د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## څلورم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه
**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین
**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنټ غړي
**ټولګی:** ځلورم
**د متن ژبه:** پښتو
**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست
**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست
**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي
**د چاپ ځای:** کابل
**چاپخونه:**
**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلندکیږي.





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی يې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي
پاميريان، نورستانيان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ايماق، هم پشه يان
دا هيواد به تل ځليږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سينه کې د آسيا به
لکه زړه وي جاويدان
نوم د حق مو دی رهبر
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# فهرست

# عقیده

عقیده ایمان او باور ته وايي.

عقیده د ټولو عملونو اساس او بنسټ دی.

که عقیده سمه نه وي، هېڅ عمل نه قبلیږي.

موږ په الله تعالی، ملایکو او آسماني کتابونو ایمان لرو.

موږ په پیغمبرانو، د آخرت په ورځ او د خیر او شر په تقدیر ایمان لرو.

سمه عقیده د انسان د دنیا او آخرت بریالیتوب دی.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د سمې عقيدې د ارزښت په هکله په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ.

۲. لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

- تورات پر...... علیه السلام نازل شوی دی.
- انجیل پر ....... علیه السلام نازل شوی دی.
- زبور پر ....... علیه السلام نازل شوی دی.
- قرآن کریم پر ......... ﷺ نازل شوی دی.

## پوښتنې

۱. عقيده څه ته وايي؟

۲. د ټولو عملونو اساس څه شی دی؟

۳. سمه عقیده لرل کومې گټې لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې وليکي.

# دویم لوست

## الله ﷻ

الله ﷻ یو دی، شریک او ساری نه لري.

الله ﷻ پر هر څه عالم دی.

هېڅ شی له الله ﷻ څخه پټ نه دی.

الله ﷻ پر هر څه قادر دی.

ټول کاینات الله ﷻ پیدا کړي دي.

موږ یوازې د الله ﷻ عبادت کوو.

ځمکه، غرونه، ونې، کاڼي، بوټي، آسمانونه او ټول مخلوقات
د الله تعالی د امر تابع دي.

د الله ﷻ له ارادې پرته هېڅ کار هم کېدای نه شي.

## فعالیتونه

په دې هکله بحث وکړئ چې:

۱. کاینات د چا د امر تابع دي؟

۲. لمر راختل او پرېوتل د الله ﷻ تابع دي.

۳. زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د الله ﷻ لس نومونه واخلي.

## پوښتني

۱. کاینات چا پیدا کړي دي؟

۲. مور د چا عبادت کوو؟

۳. ځمکه، غرونه او آسمانونه د چا تابع دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست په اړه د کورنۍ له غړو سره خبرې وکړي؛ او بیا دې د الله ﷻ د قدرتونو په هکله څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د الله ﷻ صفتونه

موږ د الله تعالی په ټولو صفتونو ایمان لرو.

د الله تعالی صفتونه په دوه ډوله دي:

۱. ذاتي صفتونه.

۲. فعلي صفتونه.

**۱- ذاتي صفتونه**: هغه صفتونه دي چې الله تعالی یې پر ضد نه ستایل کېږي، لکه علم چې ضد یې جهل دی.

**۲- فعلي صفتونه**: هغه صفتونه دي چې الله تعالی یې پر ضد ستایل کېږي، لکه احیاء (ژوندي کول) چې ضد یې اماتت (مړه کول) دي.

زموږ ژوند او مرګ د الله تعالی په واک کې دی.

## فعالیتونه

۱. د الله تعالی د صفتونو په اړه خبرې وکړئ.

۲. د الله تعالی لاندې نومونه له معناوو سره ولولئ:

(الْوَاحِدُ، الصَّمَدُ، الأَوَّل، الآخِرُ، الْعَزِيزُ، الْمَلِكُ، الْحَقُّ)

معنا: الله یو، بی نیازه، لومړنی، وروستی، زورور، پاچا او حق ذات دی.

۳. زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې د الله تعالی پنځه ذاتي او بله ډله دې فعلي صفتونه ووايي.

## پوښتنې

۱. د الله تعالی صفتونه په څو ډوله دي؟

۲. د الله تعالی ذاتي صفتونه کوم دي؟

۳. د الله تعالی فعلي صفتونه کوم دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د الله تعالی د ذاتي او فعلي صفتونو په اړه د خپلې کورنۍ له غړو سره خبرې وکړي.

# د الله جل جلاله ذاتي صفتونه

د الله تعالی ذاتي صفتونه په لاندې ډول دي:

۱. قدرت (توانايي): الله تعالی پر هر څه قادر دی.

۲. اِراده (قصد کول): الله تعالی د خپلې اِرادې خاوند دی.

۳. سمع (اورېدل): الله تعالی هر څه اوري.

۴. بصر (لیدل): الله تعالی هر څه ویني.

۵. علم (پوهه): الله تعالی پر هر څه پوهېږي.

۶. حیات (ژوند): الله تعالی تل ژوندی دی.

۷. کلام (خبرې کول): خبرې کول د الله تعالی صفت دی.

## فعالیتونه

۱. د الله تعالی د ذاتي صفتونو په اړه يو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. د الله تعالی لاندې نومونه په يادو ووايئ:

(الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ)

۳. د الله تعالی لاندې نومونه له معنا سره ولولئ:

(السَّمِيعُ، الْبَصِيرُ، الْعَلِيمُ، الْعَظِيمُ، الْمُتَعَالِ، الْحَيُّ، الْقَادِرُ)

معنا: الله ﷻ اورېدونکی، ليدونکی، پوه، لوی، لوړ مرتبه، تل ژوندی او قدرت لرونکی ذات دی.

## پوښتني

۱. د الله تعالی ذاتي صفتونه کوم دي؟

۲. د قدرت، اِرادې، سمع او بصر معنا ووایاست.

۳. د علم، حیات او کلام معنا وې څه دي؟

## کورنی دنده

زده کوونکي دې د الله تعالی پورتني صفتونه په يادو زده کړي.

# د الله ﷻ فعلي صفتونه

د الله تعالی ځینې فعلي صفتونه په لاندې ډول دي:

۱- **تخلیق (پیدا کول):** الله ﷻ د ټولو مخلوقاتو پیدا کوونکی دی.

۲- **ترزیق (روزي ورکول):** الله ﷻ ټولو مخلوقاتو ته روزي ورکوي.

۳- **احیاء (ژوندي کول):** الله ﷻ ټولو مخلوقاتو ته ژوند ور ښښي .

۴- **اماتت (مړه کول):** د ټولو مخلوقاتو مرگ د الله ﷻ په واک کې دی.

۵- **رحمت (مهرباني):** الله ﷻ ډېر مهربان ذات دی.

۶- **غضب (قهر):** د الله ﷻ له احکامو څخه سر غړونه د الله ﷻ د قهر سبب کیږي.

۷- **اعزاز (عزت ورکول):** چا ته چې الله ﷻ وغواړي، عزت ورکوي.

۸- **اذلال (ذلت ورکول):** چا ته چې الله ﷻ وغواړي ، ذلیل کوي یې.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د الله تعالی د فعلي صفتونو په اړه خبرې وکړئ.

۲. د الله تعالی لاندې نومونه له معنا سره ولولئ:

(الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ، الْغَفُورُ، الْقَابِضُ، الْبَاسِطُ، الْمُعِزُّ، الْمُذِلُّ، الْمُحْيِي، الْمُمِيتُ)

معنا: الله جل جلاله عام او خاص مهربان، ښښونکی، د روزي اخیستونکی او پراخه کوونکی، عزت ورکوونکی، ذلت ورکوونکی، ژوندی کوونکی او مړ کوونکی ذات دی.

## پوښتنې

۱. د الله تعالی له فعلي صفتونو څخه پنځه صفتونه ووایئ.

۲. د تخلیق معنا څه ده؟

۳. احیاء او اماتت څه ته ویل کیږي؟

۴. د رحمت ضد څه شی دی؟

۵. اعزاز څه ته ویل کیږي؟

## کورنی دنده

زده کوونکي دې د الله تعالی فعلي صفتونه په یادو زده کړي.

# قبر

مرگ حق دی او ټول انسانان پرې باور لري.

موږ د قبر په ژوند ایمان لرو.

قبر د نیک مسلمان لپاره د جنت باغچه او

د کافر او بد عمل انسان لپاره د دوزخ کنده ده.

په قبر کې له هر انسان څخه درې پوښتنې کیږي:

۱. ستا رب څوک دی؟

۲. ستا دین څه شی دی؟

۳. ستا نبي څوک دی؟

نیک مسلمان یې په ځواب کې وایي:

۱. الله تعالی مې رب دی.

۲. دین مې اسلام دی.

۳. حضرت محمد ﷺ مې نبي دی.

چې په دې سره د قبر له عذابه خلاصون مومي.

کافر او بد عمل انسان د دغو پوښتنو ځواب نه شي ورکولای.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د قبر په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. د قبر ترڅنګ د تېرېدو پر مهال لاندې دعا تکرار کړئ:

السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَومٍ مُؤْمِنِينَ، وِ إِنَّا - إِنْ شَاءَ اللهُ - بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ، نَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ.

## پوښتنې

۱. قبر د چا لپاره د جنت باغچه ده؟

۲. قبر د چا لپاره د دوزخ کنده ده؟

۳. په قبر کې له مړي څخه کومې پوښتنې کېږي؟

۴. په قبر کې به نېک مسلمان د درېو پوښتنو په ځواب کې څه وايي؟

۵. آیا کافر او بد عمله انسان د قبر پوښتنو ته ځواب ویلی شي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قبر په اړه د کورنۍ له غړو سره خبرې وکړي.

# حشر

موږ د قیامت په راتلو ایمان لرو.

د قیامت په ورځ ټول مړي بیرته را ژوندي کیږي.

ټول مخلوقات د الله ﷻ په امر د حشر په میدان کې را ټولیږي.

په حشرکې له هر انسان سره حساب کیږي.

رسول الله ﷺ فرمایي: له هر انسان څخه څلور پوښتنې کیږي:

۱. ځواني دې په څه کې تیره کړه ؟

۲. عمر او ټول ژوند دې په څه کې تیر کړ؟

۳. مال او دولت دې له کومه پیدا کړ او په څه کې دې مصرف کړ؟

۴. په خپل علم دې څومره عمل وکړ؟

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د حشر په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. په اودس کولو سره به د قیامت په ورځ د مسلمانانو مخونه او لاسونه ځلیږي، په دې هکله خبرې وکړئ .

## پوښتني

۱. حشر څه ته ویل کیږي؟

۲. د حشر په میدان کې له انسانانو سره څه کیږي؟

۳. په حشر کې له انسان څخه کومې پوښتنې کیږي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د حشر په اړه نور معلومات هم تر لاسه کړي.

# جنت

موږ په جنت ایمان لرو.

الله ﷻ په آخرت کې د مؤمنانو لپاره جنت تیار کړی دی. په جنت کې هر ډول نعمتونه شته.

مؤمنان به تل په جنت کې اوسیږي.

الله تعالی مسلمان ته د نیکو عملونو په بدل کې جنت ورکوي.

موږ باید ښه کارونه وکړو چې الله تعالی یې په بدل کې جنت را کړي.

په جنت ایمان لرل فرض دي.

## فعالیتونه

۱. زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او د ښوونکي په مرسته دې د لوست په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

۲. د ښوونکي په مرسته د جنت څو نمونه واخلئ.

۳. (لَا إِلَهَ إِلَّا الله) د جنت کلی ده. بحث پرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. په جنت کې الله تعالی جنتیانو ته څه تیار کړي دي؟

۲. جنت کومو خلکو ته ور په برخه کېږي؟

۳. آیا په جنت ایمان لرل فرض دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د جنت په اړه د خپلې کورنۍ له غړو څخه پوښتنې وکړي او معلومات دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# دوزخ

مونږ په دوزخ ایمان لرو.

الله تعالی کافرانو ته د سزا ورکولو لپاره دوزخ پیدا کړی دی.

دوزخ د سختو عذابونو ځای دی.

کافران به تل په دوزخ کې اوسیږي.

مسلمان په دوزخ کې د خپلو ګناهونو په اندازه سزا ویني.

په دوزخ ایمان لرل فرض او انکار ترې کفر دی.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د دوزخ د عذابونو په اړه خبرې وکړئ.

۲. مور په دوزخ ایمان لرو. په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

**۱. الله تعالی دوزخ د چا لپاره پیدا کړی دی؟**

**۲. کافران په آخرت کې چېرې اوسېږي؟**

**۳. آیا په دوزخ ایمان لرل فرض دي؟**

## کورنۍ دنده

**زده کوونکي دې د لوست متن په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.**

# اوبه (۱)



اوبه د الله ﷻ لوی نعمت دی.

ټول ژوندي مخلوقات اوبو ته اړتيا لري.

اوبه د پاکولو وسيله ده.

موږ بايد اوبه بې ځايه مصرف نه کړو.

اوبه په درې ډوله دي:

۱. پاکوونکې اوبه

۲. مستعملې يا کار اخيستل شوې اوبه

۳. نا پاکې اوبه

۱. پاکوونکې اوبه: لکه د څا، نل، لاسي بمبې، چينې، ويالې، سيند او باران اوبه چې نجاست په کې نه وي.

په دغو اوبو اودس کېږي او شیان پرې پاکېږي،

۲. مستعملې اوبه: هغه دي، چې اودس یا غسل پرې شوی وي. دا اوبه په خپله پاکې دي، خو اودس او غسل پرې نه کېږي. هغه مایعات چې اوبه ورته نه ویل کېږي، لکه: چای، جوس او ښوروا پاک دي، خو اودس او غسل پرې نه کېږي.

### فعالیتونه

۱. د اوبو د ارزښت په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. اوبه باید بې ځایه مصرف نه شي په دې هکله خبرې وکړئ.

### پوښتنې

۱. آیا له اوبو پرته ژوند کېدلای شي؟

۲. اوبه په څو ډوله دي ؟

۳. د پاکو اوبو یو مثال ووایئ.

۴. آیا په مستعملو اوبو اودس کېږي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اوبه (۲)



۳. ناپاکې اوبه: هغه اوبه دي چې نجاست ورسره ګډ شوی وي.
نا پاکې اوبه هر پاک شی ناپاکه کوي.
لږې اوبه د نجاست په ګډېدو ناپاکه کيږي.
ډېرې او روانې اوبه د نجاست په غورځېدو هغه وخت ناپاکه کيږي چې د نجاست نښې په کې ښکاره شي.
د ډېرو او روانو اوبو د نجاست نښې درې دي:
۱. د نجاست په غورځېدو يې رنګ بدل شي.
۲. د نجاست په غورځېدو يې خوند بدل شي.
۳. د نجاست په غورځېدو يې بوی بدل شي.
ډنډونه هغه ډېرې اوبه دي چې د يو لوري په ښورولو يې بل

لوری نه خوځیږي.
په ناپاکو اوبو اودس او غسل نه کیږي.
ښه زده کوونکی اوبه نه ناپاکه کوي.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته یو له بل سره د ناپاکو اوبو د بدو اغېزو په اړه خبرې وکړئ.

۲. ناپاکې اوبه د انسان روغتیا ته زیان رسوي. په دې هکله په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. ناپاکې اوبه تعریف کړئ.

۲. آیا ناپاکې اوبه پاک شیان ناپاکوي؟

۳. آیا په ناپاکو اوبو اودس او غسل کیږي؟

۴. رواني او ډېرې اوبه څه وخت ناپاکې کیږي؟

۵. ډېرې اوبه تعریف کړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ناپاکو اوبو بېلګې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د اوداسه فرضونه



اودس د لمانځه شرط دی.

په اودس کولو سره زموږ بدن پاکېږي.

په اودس کولو سره د مسلمان ګناهونه بښل کېږي.

**اودس څلور فرضونه لري:**

۱. د مخ پرېمينځل، د وېښتانو له شنه کېدلو تر زنې لاندې او د يوه غوږ له نرمۍ څخه د بل غوږ تر نرمۍ پورې.

۲. د څنګلو سره د لاسونو پرېمينځل.

۳. د سر څلورمه برخه مسح کول.

۴. د ښنګرو سره د پښو پرېمينځل.

## فعالیتونه

۱. څو زده کوونکي دې د ښوونکي په وړاندې اودس وکړي.

۲. د ښوونکي په مرسته د اودس او تیمم تر منځ توپیر ووایئ.

## پوښتنې

۱. آیا اودس د لمانځه له شرطونو څخه دی؟

۲. اودس مسلمان ته څه ګټه رسوي؟

۳. د اوداسه فرضونه څو او کوم دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اوداسه فرضونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د اوداسه سنتونه

موږ له خپل پیغمبر محمد ﷺ سره مینه لرو.
په سُنتونو يې عمل کوو.
اودس د پیغمبر ﷺ له سُنتونو سره سم کوو.

**د اوداسه له سنتونو څخه:**

۱. د اودس نیت کول.
۲. د اوداسه په پیل کې (بِسم الله الرحمن الرحیم) ویل.
۳. تر مړوندو پورې د دواړو لاسونو پرېمینځل.
۴. مضمضه یعنې د خولې پرېمینځل.
۵. استنشاق یعنی د پوزې پرېمینځل.
۶. د ټول سر مسح کول.
۷. د هر غړي درې ځلې پریمینځل.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په وړاندې د اوداسه سُنتونه تمثیل کړئ.

۲. په اوداسه کې د کومو غړو درې ځلې پرېمنځل سُنت دي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. موږ باید څنګه اودس وکړو؟

۲. (بِسم الله) ویل په اوداسه کې څه حُکم لري؟

۳. مضمضه او استنشاق څه ته وايي؟

۴. د هر غړي څو ځلې پرېمینځل سُنت دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اوداسه سُنتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اذان (۱)

اذان لمانځه ته د خلکو رابللو لپاره کېږي.

د اذان کول د پنځه ګونو لمونځونو او د جمعې د لمانځه لپاره مؤکد سُنت دی.

اذان کول ډېر ثواب لري.

اذان ویونکي ته مؤذن ویل کېږي.

حضرت بِلال رضي الله عنه لومړنی مؤذن دی.

**د آذان ادبونه:**

- مؤذن باید په اوداسه، د قبلې لوري ته په ولاړه او لوړ آواز اذان وکړي.

- مؤذن باید د «حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ» ویلو په وخت کې مخ ښي او د «حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ» ویلو په وخت کې مخ کیڼ لوري ته وګرځوي.

## فعالیتونه

۱. اذان د څه لپاره کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۲. هغه کوم لمونځونه دي چې اذان ورته نه کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۳. د سهار د لمانځه اذان د نورو وختونو له اذان څخه څه توپیر لري؟ بحث پرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. اذان کول د کومو لمونځونو لپاره سُنت دی؟

۲. آیا اذان کول ثواب لري؟

۳. لومړنی مؤذن څوک و؟

۴. د اذان دوه ادبونه ووایئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اذان (۲)




**د اذان الفاظ:**

اللهُ أَكْبَرُ * اللهُ أَكْبَرُ * اللهُ أَكْبَرُ * اللهُ أَكْبَرُ

أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ * أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ

أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ * أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ

حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ * حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ

حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ * حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ

اللهُ أَكْبَرُ * اللهُ أَكْبَرُ

لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ

د سهار په اذان کې له دوه ځلې (حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ) ويلو وروسته دوه ځلې (الصَّلاَةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ) ويل کيږي.

## فعالیتونه

۱. څو زده کوونکي دې په ټولګي کې اذان تمثیل کړي.

۲. اذان کوونکی باید څه ځانګړتیاوې ولري؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. څوک کولای شي چې اذان عملاً تمثیل کړي؟

۲. د سهار په اذان کې له دوه ځلې (حَیَّ عَلَی الْفَلاَحِ) ویلو وروسته څه ویل کېږي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې اذان په یادو زده کړي.

# د اذان معنا

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
| --- | --- |
| اللهُ أَكْبَرُ | الله جل جلاله ډېر لوی دی |
| أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ | شاهدي ورکوم چې له الله جل جلاله پرته بل حق معبود نشته |
| أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ | شاهدي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی رسول دی |
| حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ | راشئ لمانځه ته |
| حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ | راشئ د خلاصون خوا ته |
| لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ | له الله تعالی پرته بل حق معبود نشته |
| الصَّلاَةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ | لمونځ له خوب ښه غوره دی |

## فعالیتونه

۱. د اذان د معنا په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. د اذان په پیل کې کومه کلمه راغلې ده؟ د شهادت، که طیبه کلمه؟ بحث پرې وکړئ.

۳. د اذان پر مهال اورېدونکي ته څه په کار دي ؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. (اللهُ أَکْبَرُ) څه معنا لري؟

۲. حَيَّ عَلَی الصَّلاَةِ وژباړئ.

۳. حَيَّ عَلَی الْفَلاَحِ وژباړئ.

۴. الصَّلاَةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ څه معنا لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اذان د الفاظو معنا په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اقامت

## د اقامت الفاظ

اَللّٰهُ أَكْبَرُ * اللّٰهُ أَكْبَرُ * اللّٰهُ أَكْبَرُ * اللّٰهُ أَكْبَرُ

أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ * أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ

أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ * أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ

حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ * حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ

حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ * حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ

قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ * قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ

اللّٰهُ أَكْبَرُ * اللّٰهُ أَكْبَرُ

لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| قَدْ قَامَتِ الصَّلاۃُ | یقیناً جماعت (جَمعه) ودرېده |

## فعالیتونه

۱. د اقامت معنا په ټولګي کې تکرار کړئ.

۲. څوک د اقامت د ویلو لومړیتوب لري؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. د اذان او اقامت توپیر څه دی؟

۲. قَدْ قَامَتِ الصَّلاۃُ څه معنا لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اقامت الفاظ په خپلو کورونو کې تکرار او عملي کړي.

# د اذان دعا

د اذان اجابت مستحب دی.

له مؤذن سره د اذان د کلمو تکرارولو ته د اذان اجابت وايي.

د (حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ) او (حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ) د اوريدلو په وخت کې (لاَحَولَ ولاَقُوةَ إلاّ بِاللّهِ) ويل کيږي.

**له اذان څخه وروسته دعا:**

اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ، وَالصَّلاَةِ الْقَائِمَةِ، آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِى وَعَدْتَهُ.

## فعالیتونه

۱. د اذان دعا په خپلو منځو نو کې تکرار کړئ.

۲. په اذان کې هغه کومه جمله ده چې مسلمانان لمانځه ته پرې بلل کېږي؟ په ګوته يې کړئ.

## پوښتنې

۱. آيا د اذان اجابت مستحب دی؟

۲. کله چې له مؤذن څخه د (حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ) کلمې واورئ، څه وايئ؟

۳. له اذان څخه وروسته دعا په ياد و وايئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اذان دعا حفظ کړي.

# د اذان د دعا معنا

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ | اې الله زما ربه، د دغې بشپړې بلنې خاونده |
| وَالصَّلاَةِ الْقَائِمَةِ | او د ولاړ لمونځ خاونده. |
| آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ | محمد ﷺ ته هغه وسيله او غوره والی ورکړه |
| وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِى وَعَدْتَهُ | او په هغه محمود او ستايل شوي ځای يې را پاڅوه چې تا ورسره وعده کړې ده. |

## فعالیتونه

۱. د اذان د دعا ژباړه په خپلو منځونو کې تکرار کړئ.

۲. زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډلې دې د اذان دعا ولولي او بله ډله دې معنا ووایي.

## پوښتنې

۱. (اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ) وژباړئ؟

۲. ( وَالصَّلاَةِ الْقَائِمَةِ)  څه معنا لري؟

۳. د (آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ ) معنا ووایئ.

۴. د (وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِى وَعَدْتَهُ) ژباړه وکړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اذان د دعا معنا حفظ او په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# تحریمه تکبیر

د لمانځه په پیل کې (اللهُ أَكْبَرُ) ویلو ته تحریمه تکبیر ویل کېږي.

په لمانځه کې تحریمه تکبیر فرض دی.

په تحریمه تکبیر سره لمونځ پیل کېږي.

د تحریمه تکبیر په وخت کې به نارینه دواړه لاسونه د غوږونو تر نرمیو پورته کوي او ښځه به دواړه لاسونه تر اوږو پورته کوي.

کله چې تحریمه تکبیر وویل شي، له لمانځه څخه بهر کارونه په لمونځ کوونکي حرامېږي.

### فعالیتونه

۱. څو زده کوونکي دې د تحریمه تکبیر ویلو پر مهال د لاسونو پورته کول تمثیل کړي.

۲. په تحریمه تکبیر ویلو سره له لمانځه څخه بهر کارونه په لمونځ کوونکي حرامېږي. په دې هکله خبرې وکړئ.

### پوښتنې

۱. تحریمه تکبیر څه ته وایي؟

۲. آیا تحریمه تکبیر په لمانځه کې فرض دی؟

۳. د تحریمه تکبیر پر مهال به نارینه خپل لاسونه تر کوم ځایه پورته کوي؟

۴. د تحریمه تکبیر پرمهال به ښځه خپل لاسونه تر کوم ځایه پورته کوي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د ثنا معنا



ثنا د الله تعالی صفت او ستاینې ته وايي.

په لمانځه کې د ثنا (سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ) ويل سُنت دي.

له تحريمه تکبير څخه وروسته ثنا ويل کيږي.

**د ثنا معنا:**

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ | ته له عيب څخه پاک يې اې الله! |
| وَبِحَمْدِكَ | تا لره ښه صفتونه دي |
| وَتَبَارَكَ اسْمُكَ | ستا نوم د خير او برکت دی |
| وَتَعَالَى جَدُّكَ | او شان دې لوړ دی |
| وَلا إِلَهَ غَيْرُكَ | او پرته له تا څخه بل حق معبود نشته . |

## فعالیتونه

۱. د ثنا معنا په ټولګي کې بیان کړئ.

۲. الله ﷻ له هر عیب څخه پاک دی، په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. ثنا څه ته ویل کیږي؟

۲. آیا په لمانځه کې د ثنا ویل سُنت دي؟

۳. په لمانځه کې ثنا څه وخت ویل کیږي؟

۴. د ثنا ژباړه ووایئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې ثنا له معنا سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د تعوذ او تسميې معنا

(أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ) ته تعوذ ويل کيږي.

(بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ) ته تسميه ويل کيږي.

په لمانځه کې له ثنا وروسته د (أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ) او (بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ) ويل سُنت دي.

د هر کار په پيل کې د (بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ) ويل سُنت دي.

**د تعوذ معنا:**

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| أَعُوذُ بِاللهِ | په الله تعالی پناه غواړم |
| مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمَ | د شړل شوي شيطان له شره. |

| د تسميې معنا | |
|---|---|
| بِسْمَ اللهِ | د الله تعالی په نامه سره پيل کوم |
| الرَّحْمَنِ | زيات رحمت والا دی |
| الرَّحِيمَ | مهربانه دی |

## فعالیتونه

۱. د تعوذ او تسمیې معنا تکرار کړئ.

۲. کوم کار چې په ﴿بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ﴾ پیل نه شي، نیمګړی پاتې کیږي. په دې هلکه خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. په لمانځه کې تعوذ او تسمیه څه وخت ویل کیږي؟

۲. آیا په لمانځه کې د ﴿بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ﴾ ویل سُنت دي؟

۳. ﴿أَعُوذُ بِاللهِ﴾ څه معنا لري؟

۴. د ﴿الرَّحْمَنِ﴾ او ﴿الرَّحِيمِ﴾ معنا وواياست.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د تعوذ او تسمیې معنا حفظ کړي.

# د تسمیع او تحمید معنا

تسمیع د (سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ) ویلو ته وایي.

تحمید د (رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ) ویلو ته وایي.

په لمانځه کې له رکوع څخه وروسته په ولاړه د تسمیع او تحمید ویل سنت دي.

## د تسمیع او تحمید معنا

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| سَمِعَ اللهُ | اورې (قبلوي) الله تعالی |
| لِمَنْ حَمِدَهُ | له هغه چا څخه چې د ده ستاینه او حمد وایي. |
| رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ | اې زموږ ربه، یوازې تا لره ده ثنا او ستاینه. |

## فعالیت

۱. د تسمیع او تحمید معنا تکرار او د لوستلو ځای یې روښانه کړئ.

۲. تسمیع او تحمید د لمانځه په کوم ځای کې ویل کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. تسمیع څه ته ویل کیږي؟

۲. تحمید څه ته ویل کیږي؟

۳. تسمیع او تحمید د لمانځه په کوم ځای کې ویل کیږي؟

۴. آیا د (رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ) ژباړه مو زده ده؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د تسمیع او تحمید معنا حفظ کړي.

# د تسبيحاتو معنا

د (سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ) او (سُبْحَانَ رَبِّيَ الاَعْلَى) ويلو ته تسبيحات ويل کيږي.

په رکوع کې درې ځلې (سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ) ويل سنت دي.

په سجده کې درې ځلې (سُبْحَانَ رَبِّيَ الاَعْلَى) ويل سنت دي.

**د رکوع د تسبيح معنا:**

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| سُبْحَانَ رَبِّي | پاکي ده زما رب لره |
| الْعَظِيمَ | ډېر لوی دی |
| **د سجدې د تسبيح معنا** | |
| سُبْحَانَ رَبِّي | پاکي ده زما رب لره |
| الأَعْلَى | د ډېر لوړ مقام خاوند دی |

## فعالیتونه

۱. تسبیحات په خپلو منځونو کې تکرار کړئ.

۲. تسبیحات د لمانځه په کوم ځای کې ویل کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. تسبیحات څه ته وایي؟

۲. په رکوع او سجده کې څو ځلې تسبیحات ویل سنت دي؟

۳. (الْعَظِيمِ) څه معنا لري؟

۴. د (الاَعْلَى) معنا ووایئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د تسبیحاتو معنا حفظ کړي.

# سلام



د لمانځه له پوره کېدلو وروسته، وتل ترې فرض دي.

د (السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ) په ويلو سره له لمانځه څخه وتل سُنت دي.

لمونځ کوونکی ښي او کيڼ لوري ته سلام ګرځوي.

په سلام ګرځولو کې مخ له اوږو سره برابرېږي.

له لمانځه څخه بهر د سلام اچول سُنت او ځواب يې واجب دی.

| الفاظ او کلمې | ژباړه |
|---|---|
| السَّلامُ | سلام دې وي |
| عَلَيْكُمْ | پر تاسو |
| وَرَحْمَةُ اللهِ | او د الله تعالی مهرباني دې وي. |

### فعالیتونه

۱. د سلام د معنا او ارزښت په اړه په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ.

۲. په کومو حالتونو کې سلام اچول په کار، نه دي؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.

### پوښتنې

۱. آیا له لمانځه خخه وتل د (السَّلامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ) په ویلو سره سُنت دي؟

۲. آیا له لمانځه خخه بهر د سلام اچول سُنت دي؟

۳. د سلام معنا ووایئ.

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سلام الفاظ او معنا حفظ کړي.

# د خوب آداب

خوب د الله جَلَّ جَلَالُهُ لخوا پر بندګانو لوی نعمت دی .

خوب سره د انسان د بدن ستړیا له منځه ځي او اعصاب یې آرامیږي.

مسلمان د ویده کېدو پر مهال ځان الله جَلَّ جَلَالُهُ ته سپاري.

الله جَلَّ جَلَالُهُ یې له ستونزو او کړاوونو څخه ژغوري.

له خوبه بېرته پاڅېدل د انسان لپاره نوی ژوند دی.

د خوب ادبونه:

زه د ویده کېدو په وخت د خپل پیغمبر محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا لاندې لارښوونې په پام کې نیسم:

۱. په وخت ویده کیږم.

۲. په ښي اړخ ویده کیږم.

۳. په ښي لاس سر ږدم.

۴. آیت الکرسي، اخلاص، الفلق او الناس سورتونه لولم.

۵. د خوب دا دعا وایم: (اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا).

معنا: اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ستا په نوم مرم ( ویده کیږم) او بېرته ژوندی کیږم (له خوبه پاڅیږم).

۲. له خوبه د پاڅېدلو په وخت کې دا دعا وايم: (الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النّشُورُ).

معنا: ټوله ستاینه هغه الله ﷻ لره ده چې له مرګه (خوبه) يې موږ بيرته ژوندي کړلو او همغه ته ورتګ دی.

موږ بايد له اړتيا پرته زيات خوب ونه کړو.

## فعاليتونه

۱. د خوب د ادبونو په هکله په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ.

۲. د خوب په ليدلو کې له ځان څخه نورې خبرې جوړول لويه ګناه ده. په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شريک کړئ.

## پوښتنې

۱. خوب انسان ته څه ګټه رسوي؟

۲. د ويده کېدو په وخت کومه دعا لوستل کېږي؟

۳. هغه کوم سورتونه دي چې له خوبه مخکې يې ويل سنت دي؟

۴. له خوبه د را پاڅېدو دعا ووايئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې خپلې هغه سُنت چارې چې له خوبه مخکې يې سرته رسوي د مقالې په شکل په خپلو کتابچو کې وليکي.

# له کور څخه د وتلو دعا

مور د خپل پیغمبر محمد ﷺ پیروي کوو.

رسول الله ﷺ فرمايي: کله چې مسلمان له کوره وځي او دا دعا ووايي: «بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ».

نو دا آواز ورته وشي:

۱. تا ته د حق لارښوونه وشوه.

۲. ټولې اړتیاوې دې پوره کېږي.

۳. او له هر ډول شر او فتنې څخه خوندي شوې.

د پورتنۍ دعا معنا:

د الله ﷻ په مرسته وځم، توکل مې پر الله ﷻ دی، د الله ﷻ په مرسته به له ګناه نه ځان ژغورم او نېک کارونه به کوم.

## فعالیتونه

۱. له کورڅخه د وتلو دعا یو بل ته ووایئ.

۲. له کورڅخه د وتلو د دعا معنا یو بل ته ووایئ.

## پوښتنې

۱. له کور څخه د وتلو په وخت کومه دعا ویل کیږي؟

۲. د یادې دعا ګټې ووایئ.

۳. یاده دعا معنا کړئ .

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له کور څخه د وتلو دعا له ژباړې سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# غوره اخلاق

حضرت محمد ﷺ فرمايي: «أَثْقَلُ شَيءٍ فِي الْمِيزَان الخُلُقُ الْحَسَن» مسند امام احمد

ژباړه: (د قيامت په ورځ به) د اعمالو په تله کې له ټولو عملونو څخه درووند (ارزښتمن) عمل، ښه اخلاق وي.

له غوره اخلاقو څخه ځيني يې په لاندې ډول بيانيږي:

- رښتيا ويل او له دروغو څخه د ځان ژغورل.
- له بدو او سپکو ويلو څخه ډډه کول.
- له خلکو سره په روا کارونو کې مرسته کول.
- د مشرانو درناوی او په کوچنيانو شفقت کول.
- خلکو ته له زيان رسولو څخه ډډه کول.
- د امانت ساتل.

موږ بايد ښه اخلاق ولرو، تر څو الله ﷻ را څخه خوښ شي او خلکو ته مو گټه ورسيږي.

## فعالیتونه

۱. په دې هکله خبرې وکړئ چې د مشرانو درناوی په څه ډول کېدای شي؟
۲. د غوره اخلاقو څو بېلګې ووایئ.

## پوښتنې

۱. لاندې کلمې معنا کړئ:
- أَثْقَلُ شَيءٍ.
- فِي الْمِيزَان.
- الخُلُقُ الْحَسَن.

۲. د ښو اخلاقو څو بېلګې ووایئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ښو اخلاقو په هکله د کورنۍ له غړو سره خبرې وکړي او په راتلونکي لوست کې دې په خپل وار سره د ښو اخلاقو ګټې په ګوته کړي.

# د منافق نښې

حضرت محمد ﷺ فرمايي: «آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ». روايت يې امام بخاري کړی دی

ژباړه: د منافق درې نښې دي:

١. په خبرو کې دروغ وايي.

٢. وعده نه پوره کوي.

٣. او په امانت کې خيانت کوي.

موږ بايد تل رښتيا ووايو، په خپلو وعدو ولاړ واوسو او امانت وساتو.

دروغ ويل انسان بې باوره کوي.

## فعالیتونه

۱. د دروغ ویلو د زیانونو په هکله په خپلو منځونو کې یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. د امانت ساتلو څو بېلګې بیان کړئ.

## پوښتني

لاندې کلمې معنا کړئ:

- آيَةُ الْمُنَافِقِ.
- كَذَبَ .
- خَانَ.

۲. د منافق څو نښې دي؟ بیان یې کړئ .

۳. دروغ ویل څه زیان لري؟

۴. آیا خلک دروغ ویونکی شخص خوښوي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د دروغ ویلو زیانونه ولیکي.

# مسلمان

مسلمان چا ته زیان نه رسوي، حضرت محمد ﷺ فرمايي:

«الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ». صحيح مسلم

ژباړه: بشپړ مسلمان هغه څوک دی چې د ژبې او لاس له ضرر څخه يې خلک په امان کې وي.

مسلمان د مسلمان ورور دی، ظلم او تېری پرې نه کوي.

کنځل، غيبت کول، سپکې او سپورې ويل گناه ده.

موږ څوک په بد نوم سره نه يادوو.

زه له خپلو ټولگيوالو سره مينه لرم او چا ته زيان نه رسوم.

### فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته هغه کړنې په نښه کړئ چې د ژبې له زیانونو څخه شمېرل کیږي.

۲. زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې د ژبې زیانونه او بله دې د لاس زیانونه بیان کړي.

### پوښتنې

۱. د لوست حدیث معنا کړئ.

۲. د ژبې په واسطه د زیان رسولو څو بېلګې ووایئ.

۳. لاندې کلمې معنا کړئ:

۱. مِنْ لِسَانِهِ ۲. وَيَدِهِ ۳. مَنْ سَلِمَ

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له ژبې څخه د ښې ګټې اخیستلو په هکله څلور کرښې ولیکي.

# روغتیا



روغتیا د الله جل جلاله لوی نعمت دی. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ». صحيح البخاري

ژباړه: دوه نعمتونه دي چې ډېر خلک ترې بې خبره دي: یو روغتیا او بل وخت.

موږ باید خپلې روغتیا ته پاملرنه وکړو.

موږ خپل بدن، جامې، او استوګنځی پاک ساتو.

خپل غاښونه په مسواک پاکوو.

## فعالیتونه

۱. د روغتیا د ارزښت په هکله په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ او د روغتیا ساتنې لارې چارې د ښوونکي په مرسته بیان کړئ.

۲. د لوست د حدیث معنا یو بل ته ووایئ.

## پوښتنې

۱- د لوست حدیث سم ولولئ.

۲- لاندې کلمې معنا کړئ:

(نِعْمَتَانِ، مَغْبُونٌ، الصِّحَّةُ، وَالْفَرَاغُ)

۳- لاندې جملې بشپړې کړئ:

- روغتیا د الله جل جلاله لوی ........ دی.
- خپل ..............او د استوګنځی پاک ساتو.
- غاښونه په ............. پاکوو.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د روغتیا د ارزښت په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي.

# پر حیواناتو زړه سوی



اسلام د شفقت او زړه سوي دین دی.

زړه سواندی بنده الله ﷻ ته نژدې دی.

پر حیواناتو زړه سوی ثواب لري.

موږ باید حیوانات و نه وهو.

موږ باید حیواناتو ته وابنه او اوبه ورکړو.

حیواناتو ته د وښو او اوبو په ورکولو سره مسلمان جنت ته ځي.

پر حیواناتو ظلم کول لویه گناه ده.

پر حیواناتو باید د دوی له توان څخه دروند پېټی بار نه کړو.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته پر حیواناتو د زړه سوي څو نورې بېلګې ووايئ او په دې هکله یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. په قفسونو کې د مرغانو او حیواناتو ساتل ګناه ده. په دې اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

## پوښتنې

لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. اسلام د شفقت او زړه سوي .......... دی.

۲. ........ بنده الله ﷻ ته نژدې وي.

۳. آیا پر حیواناتو ظلم کول ...... ده؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د زړه سوي او شفقت په هکله څلور کرښې مقاله ولیکي.